# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦٨٦ ګڼه / سه شنبه ۱۹ شعبان‌المعظم ۱٤٤٦ هـ.ق / د سلواغې ۳۰مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۱۸ فبروري ۲۰۲۵ میلادي


**الجزیره:**

## اسلامي امارت له سیمې ورهاخوا د ډیپلوماټیکو اړیکو په لټه کې دی

الجزیرې تلویزیون تازه ویلي چې د افغانستان اسلامي امارت هڅه کوي له سیمې ورهاخوا خپلې ډیپلوماټیکې اړیکې پراخې کړي.

الجزیرې جاپان ته د اسلامي امارت د وروستي پلاوي له سفر وروسته یادې څرګندونې کړې دي.

الجزیرې د جاپاني رسنیو له قوله



ویلي، د افغانستان بهرنیو، پوهنې، اقتصاد او روغتیا سکتور پلاوي جاپان ته سفر کړی دی.

د اقتصاد وزارت مرستیال عبداللطیف نظري دغې سفر ته په خپله ایکس په اشارې د نړیوالې ټولنې د فعال غړي په توګه د اسلامي امارت بدلېدو لپاره هڅه بللې ده. ۳مخ

صفحه ۲

**افغانستان و قزاقستان؛ گشایش دروازه‌های نوین تجارت و دیپلوماسی**

۲ مخ

**د اسلامي امت وحدت؛ د قوت رمز او د اختلافاتو زیان**

صفحه ۳

**افغان اعلانات**

## سره صلیب د بشري مرستو د پراختیا ژمنه وکړه



د بهرنیو چارو وزارت سرپرست مولوي امیرخان متقي د سره صلیب نړیوالې کمېټې له عمومي رییس پیر کراهنبول سره کتلي دي.

د یاد وزارت مرستیال ویاند حافظ ضیاء احمد تکل په یوې خپره کړې خبرپاڼه کې ویلي، چې په دې غونډه کې د بشري... ۳مخ

## آغاز فعالیت کارخانه تولید سنگ مرمر در لوگر



مسئولین محلی ولایت لوگر می‌گویند، یک کارخانه تولید سنگ مرمر با سرمایه‌گذاری ۱۰ میلیون افغانی از سوی سکتور خصوصی در این ولایت به فعالیت آغاز کرده است.

مسئولین ریاست صنعت و تجارت ولایت لوگر ... ص۳

**د اوسنیو او راتلونکو فعالیتونو په اړه د ټولګټو چارو وزارت له ویاند سره د شریعت مرکه**

# هېواد کې د لویو لارو، وسپنې پټلیو د پرمختګ او د نښلوونکو سړکونو چارې



**شریعت:** د ټولګټو چارو وزارت ویاند، محمد اشرف حق‌شناس ته هرکلی وایو. لوستونکو ته د خپلو کارونو په تړاو ووایئ؟ د ټولګټو چارو وزارت په ټوله کې کومې چارې رانغاړي او مسئولیتونه یې څه دي؟

**حق‌شناس:** د ټولګټو چارو وزارت په هېواد کې د لویو لارو، ملي او ولایتي سړکونو، پلونو، پلګوټو او وسپنیزې کرښې د رغولو، ترمیم، بیارغولو، ساتنې او څارنې مسئولیت پر غاړه لري.

شریعت ورځپاڼه: ډېر ښه! اوس هېواد کې د کومو لویو لارو او نویو مهمو پروژو کارونه پیلېدونکي دي او یا یې کارونه روان دي؟ دا پوښتنه ځکه کوم چې هوا مخ په ښه کېدو ده او پروژو ته مو هم کوم خنډ نشته. ۳مخ



## سرمقاله

## د بلخ نوی کانال د ملي وحدت او ځمکنۍ بشپړتیا متضمن دی!

د بلخ نوي کانال پر اقتصادي اغېز او ګټو موږ او نورو ډېرو زښته زیاتې خبرې کړې، ځکه خو دا ځل د مشرانو او مسئولینو پام د یاد کانال هغو اغېزو ته را اړوو چې راتلونکي مهال کې یې د افغانانو ترمنځ د ملي وحدت پر ټینګښت او ځمکنۍ بشپړتیا پر ساتلو لرلی شي- زموږ اصلي موخه داده چې افغانان د یاد نهر ګټې داسې استعمال او له دغه نادر فرصت نه هسې لاس ته راوړنې ولري چې د کندو له ډکولو پرته نور هم ډېر مثبت اثار پرې مرتب شي، د مثال په ډول باید د ملي وحدت ټینګښت او د هېواد ځمکنۍ بشپړتیا هدف هم په نظر کې ونیول شي، ځکه د هېواد له تاریخ او قومي جوړښت نه ټول باخبره څېړونکي ښه پوهېږي چې زموږ شمالي ګاونډ کې روسي پراختیا غوښتونکو واکمنیو د افغانستان د وېشلو او د زموږ شمالي سیمو قبضه کولو رنګارنګه هڅې کړې دي- تردې چې ځینې مغرض بهرني او کورني اجیران یې لاهم د یاد هدف ترلاسه کولو په تکل شپه ورځ د پلانونو پر جوړولو لګیا دي. بناءً پردې د هېواد اوسني ملي او سیاسي مشران هم مکلف دي چې یاد خطر هېڅکله له پامه ونه غورځوي او د دایمي شنډولو لپاره یې له موجوده زرین فرصته په ګټه اخیستلو ګړندي ګامونه واخلي- په دې لړ کې تر هر څه مخکې په کار ده چې د نوي کانال دغې مهمې پروژې ته په خورا غټه سترګه وکتل شي. په دې معنا چې د یو محلي او کلیوال «قوش تیپې» نهر پر ځای یې د ټول هېواد یوه ډېره ستره شتمني وګڼي او یو داسې کامل، شامل او له معنا ډک نوم پرې کېږدي چې له هند و بنګاله رانیولې تر منځنۍ اسیا او شامه یې د ټولو په ژبه همدا یو نوم وچلېدی شي، مثلاً غازي کانال، زمزم کانال، برکت کانال، زلال، وابل او داسې نور. بیا د نامه له ټاکلو وروسته بله ډېره مهمه موضوع دا ده چې باید اړوندې سلطاني ځمکې یې ژر تر ژره پر مستحقو خلکو ووېشل شي او موجوده حکومت هېڅکله دا اشتباه ونه کړي چې ان یوه ټوټه یې لا د حکومت په نامه پاتې شي. ځکه ښکاره ده چې حکومتونه ځي، راځي، نو خدای دې نه کړي سبا به یو داسې واکمن راغلی وي چې یادې ځمکې به په ډېره بېره پر هغو نا مستحقو ووېشي، څوک چې د وطن سودا کولو ته چمتو ناست دي او له همدې امله به هم کانال له لاسته وتلی وي او هم زموږ هېواد وېشلی. ځکه تېرو څو لسیزو کې مو ولیدل چې ځینو پر دیپالو زورواکو څومره په چټکۍ او لنډه موده کې زښته مهم ځایونه قبضه او لکونه یاران او خپلوان یې په کې مېشت کړل- پاتې شوه دا چې ښه نو ... ۳مخ

## در ۴ ولایت برای عودت‌کنندگان شهرک ساخته می‌شود

وزارت امور مهاجرین می‌گوید، قرار است در آینده برای عودت‌کنندگان در چهار ولایت در کشور شهرک‌های مهاجرین ساخته شود.

بربنیاد خبرنامه، موضوع ساخت شهرک برای عودت‌کنندگان در دیدار مولوی شکرالله شاکر، رییس عودت و ادغام مجدد وزارت امور مهاجرین و فرحانه ستاکر، مشاور ارشد راه‌حل‌های دوامدار هیئت معاونت سازمان ملل متحد در افغانستان (یوناما) به بحث گرفته شده است.

آقای شاکر هدف از این اقدام را کمک و حمایت از مهاجرین برگشته به کشور دانسته و خواستار تفاهم دو طرف شد.

در همین حال، خانم ستاکر هدف از دیدار کنونی را دستیابی به اتفاق نظر در مورد ساخت شهرک‌ها برای ... ص۳

## کندز کې یو سربند ګټې اخیستو ته وسپارل شو



د کندز د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست مسئولینو د ۳.۵ میلیون افغانیو په لګښت د یوه سربند د رغولو چارو د پیل کېدو خبر ورکړی دی.

د یاد ولایت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رییس ویلي، چې د دغه سربند د رغولو چارې د یاد ولایت د چهاردرې ولسوالۍ په ګل باغ سیمه کې د کرنې وزارت په مالي ملاتړ د ۳.۵ میلیونه افغانیو په لګښت پیل شوې چې په بشپړېدو سره به یې... ۳مخ

## آغاز برنامه ارتقای ظرفیت استادان اداره تعلیمات تخنیکی و مسلکی در کشور



ریاست ارتقای ظرفیت استادان اداره تعلیمات تخنیکی و مسلکی در یک اقدام بی پیشنه برنامه های ارتقای ظرفیت استادان را در اکثریت مراکز تعلیمات تخنیکی و مسلکی کشور آغاز کرد.

در حال حاضر این برنامه در ولایات کندهار، بلخ، پنجشیر، هرات، نیمروز، غزني، میدان وردگ، پکتیکا، دایکندی، غور، فاریاب، سمنگان، کندز، بغلان، کنر، پکتیا وننگرهار راه اندازی گردیده است.

گفتنیست که در حدود ۴۵۰ استاد مراکز تعلیمات تخنیکی و مسلکی کشور در این برنامه ها برای مدت ۷ روز پیرامون «کیفیت تدریس» ... ص۳

## زابل کې ۱۶ مخابراتي سایټونه فعال شوي

د زابل د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ مسئولین وايي، چې په دغه ولایت کې یې ۱۶ نوي مخابراتي سایټونه فعاله کړي او د ۳۱ نورو مخابراتي سایټونو د جوړېدو کارونه دوام لري.

د یاد ولایت د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ ... ۳مخ



## د افغانستان بانک نن ۲۰ میلیونه امریکایي ډالره لیلاموي



د افغانستان بانک د افغانیو پر وړاندې د ډالرو د ارزښت د کمښت په موخه، نن (۲۰) میلیونه امریکایي ډالره د لیلام په ډول پلوري.

دغه بانک باختر آژانس ته د یوې خبرپاڼې په استولو سره، په شرایطو برابر له ټولو صرافانو او تجارتي بانکونو څخه غوښتي، چې په دغو داوطلبیو کې دې ګډون وکړي او د داوطلبۍ ګټونکي یې مکلف کړي چې خپل حسابونه د ورځې تر پایه پورې تصفیه کړي.

په خبرپاڼه کې دغه راز یادونه شوې ده چې د معاملو قسمي ترسره کول مجاز نه دی او د لیلام ګټونکي دې د خپل ذمت پیسې ټولې یوځای نغدي... ۳مخ

# افغانستان و قزاقستان؛ گشایش دروازه‌های نوین تجارت و دیپلماسی

رحمت‌الله فیضان

قزاقستان، با نام رسمی جمهوری قزاقستان، کشوری در آسیای مرکزی و اروپای شرقی است که با روسیه، قرغیزستان، ازبیکستان و ترکمنستان هم‌مرز بوده و از نظر وسعت، ۹مین کشور بزرگ جهان و بزرگ ترین کشور محصور در خشکی محسوب می‌شود. این کشور با جمعیتی حدود ۲۰ میلیون تن، ترکیبی از قزاق‌ها به عنوان اکثریت و روسی‌ها به عنوان بزرگ ترین اقلیت قومی را در بر می‌گیرد.

قزاقستان تاریخ پرفرازونشیبی را تجربه کرده و از دوران سکاها و هخامنشیان گرفته تا حکومت مغولان و خانات قزاق، همواره شاهد تحولات گسترده‌ای بوده است. این کشور در قرن نوزدهم تحت کنترول روسیه درآمد و در سال ۱۹۳۶ به عنوان یکی از جمهوری‌های شوروی شناخته شد. پس از فروپاشی شوروی در سال ۱۹۹۱، قزاقستان استقلال یافت و توانست خود را به عنوان یکی از قدرت‌های نوظهور در منطقه تثبیت کند.

از نظر اقتصادی، قزاقستان قدرت مسلط آسیای مرکزی است و بیش از ۶۰ درصد تولید ناخالص داخلی منطقه را تأمین می‌کند. منابع غنی نفت و گاز، جایگاه این کشور را در معادلات منطقه‌ای و بین‌المللی تقویت کرده است. قزاقستان عضو سازمان‌های بین‌المللی مهمی همچون سازمان ملل متحد، سازمان همکاری شانگهای و اتحادیه اقتصادی اوراسیا است.

روابط رسمی و دیپلوماتیک میان افغانستان و قزاقستان از سال ۱۹۹۳ با ایجاد سفارت در آلماتی آغاز شد و در سال ۲۰۰۵ این سفارت به آستانه (پایتخت کنونی قزاقستان) منتقل گردید. قزاقستان نیز در سال ۲۰۰۳ سفارت خود را در کابل افتتاح کرد. از آن زمان تاکنون، روابط دو کشور در حوزه‌های اقتصادی، تجاری و فرهنگی گسترش یافته است.

در بخش اقتصادی، افغانستان بخشی از محصولات زراعتی خود، از جمله میوه‌های تازه و خشک را به قزاقستان صادر کرده و در مقابل، قزاقستان نیز با تأمین مواد غذایی و فرآورده‌های نفتی نقش مهمی در اقتصاد افغانستان ایفا کرده است.

در حوزه علمی، قزاقستان فرصت‌های تحصیلی را به صورت اعطای بورسیه‌های تحصیلی برای جوانان و دانشجویان افغان فراهم کرده و در کنار آن، همکاری‌های علمی و تحصلی بین دو کشور رو به افزایش است.

پس از تحولات اخیر در افغانستان و روی کار آمدن امارت اسلامی، روابط میان کابل و آستانه نه‌تنها کاهش نیافت، بلکه با دیدارهای دیپلوماتیک و امضای توافق‌نامه‌های جدید، تعاملات دو کشور در بخش‌های مختلف تقویت شده است.



**دیدارهای مقامات قزاقستان و افغانستان؛ تقویت همکاری‌های تجاری**

نماینده ویژه رئیس‌جمهور قزاقستان به همراه یک هیئت عالی‌رتبه به کابل سفر کرد و علاوه بر اعلام کمک ۵۰۰۰ تُنی آرد به افغانستان، بر تداوم همکاری‌های اقتصادی و بشردوستانه تأکید کرد. یکی از جلوه‌های بارز حمایت بشردوستانه قزاقستان، ارسال تیم‌های امدادی و کمک‌های بشری به زلزله‌زدگان هرات بود که نشان‌دهنده تعهد این کشور به همکاری‌های انسانی در منطقه است.

همچنین، وزیر تجارت قزاقستان در سفری رسمی به کابل، با مقامات افغان دیدار کرد. در جریان این سفر، نشست مطبوعاتی مشترکی بین وزیر صنعت و تجارت افغانستان و وزیر تجارت قزاقستان برگزار شد که طی آن، توافق بر سر ایجاد اتاق مشترک تجاری میان افغانستان و قزاقستان اعلام گردید. طرفین همچنین بر ایجاد دهلیزهای تجاری مشترک و افتتاح نمایندگی بانک‌های تجاری قزاقستان در افغانستان تأکید کردند.

از دیگر تحولات مهم، اعلام محکمه عالی قزاقستان بود که طی آن، امارت اسلامی افغانستان رسماً از فهرست گروه‌های تحریم‌شده که در خاک قزاقستان ممنوع‌الفعالیت بودند، خارج شد. این اقدام، نشان‌دهنده تمایل آستانه برای تعامل و گسترش روابط رسمی و تجاری با کابل است.

**اهمیت گشایش نمایندگی تجاری و کنسولگری قزاقستان در هرات**

اتاق تجارت قزاقستان در هرات به‌منظور گسترش تسهیلات تجاری و افزایش مبادلات اقتصادی بین تاجران افغان و قزاقستانی افتتاح شده است. در حال حاضر، سفارت قزاقستان در کابل و دفتر نمایندگی تجاری این کشور در هرات فعالیت دارد.

در صورتی که قزاقستان علاوه بر نمایندگی تجاری خود، دفتر کنسولی در هرات ایجاد کند، این اقدام می‌تواند به‌طور مستقیم به تسهیل روابط تجاری، سرمایه‌گذاری و ارتباطات دیپلوماتیک میان دو کشور کمک کند. همچنین، این موضوع موجب افزایش امنیت اقتصادی و گسترش فرصت‌های تجاری برای هر دو طرف خواهد شد.

یکی از اهداف مهم قزاقستان، ایجاد یک مسیر تجاری جدید از طریق ترکمنستان و افغانستان به پاکستان است. در این میان، هرات به دلیل موقعیت جغرافیایی و استراتژیک خود می‌تواند نقش کلیدی در فعال‌سازی این کریدور تجاری ایفا کند. قزاقستان به عنوان یکی از بازیگران بزرگ اقتصادی در آسیای مرکزی، می‌تواند به افغانستان کمک کند تا روابط تجاری خود را با چین، روسیه و سایر بازارهای منطقه‌ای توسعه دهد. اگر سهم قزاقستان در تجارت از طریق هرات افزایش یابد، این امر نه تنها موجب رونق اقتصادی افغانستان خواهد شد، بلکه دروازه‌های جدیدی برای تجارت منطقه‌ای خواهد گشود.

فعال‌سازی مسیر هرات - ترکمنستان - قزاقستان می‌تواند موجب افزایش تمایل پاکستان به گسترش تجارت خود با روسیه شود. در صورت تحقق این مسیر تجاری، محصولات پاکستانی از طریق هرات به ترکمنستان و قزاقستان منتقل شده و از آنجا به بازارهای روسیه راه خواهد یافت. چنین تحولی، جایگاه ترانزیتی افغانستان را بیش از پیش تقویت کرده و این کشور را به یکی از مراکز اصلی تجارت منطقه‌ای تبدیل خواهد کرد.

افتتاح کنسولگری قزاقستان در هرات، از لحاظ اقتصادی، تجاری و دیپلوماتیک دارای اهمیت بالایی است. این اقدام نه‌تنها فرایندهای تجاری را تسهیل می‌کند، بلکه افغانستان را به یک حلقه مهم ترانزیتی در منطقه تبدیل کرده و فرصت‌های جدیدی برای توسعه اقتصادی، جذب سرمایه‌گذاری و گسترش همکاری‌های منطقه‌ای فراهم خواهد کرد.

با توجه به رشد سریع روابط افغانستان و قزاقستان، انتظار می‌رود که در سال‌های آینده، سطح همکاری‌های تجاری، اقتصادی و سیاسی بین دو کشور بیش از پیش افزایش یابد و زمینه‌های جدیدی برای تعاملات استراتژیک میان کابل و آستانه گشوده شود.

# د اسلامي امت وحدت؛ د قوت رمز او د اختلافاتو زيان

محمد قاسم عزام

د اسلامي ټولنې يووالی د مسلمانانو د قوت، عزت او ثبات اساسي عنصر دی. اسلام له پيله مسلمانان ورورولۍ، يووالي او يو بل ته درناوي ته هڅولي دي، ځکه چې د اختلاف او وېش له امله امت کمزوری کېږي، داخلي شخړې رامنځته کېږي او بهرني ځواکونه د نفوذ فرصت مومي. قرآن کريم مسلمانان د يووالي لور ته دعوت کړي، قرانکريم وايي: "وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا" (آل عمران: ۱۰۳)؛ يعني د الله رسۍ ټينګه ونيسئ او تفرقه مه کوئ. دا آيت څرګندوي چې وحدت د اسلامي ټولنې لپاره حياتي ارزښت لري. د اسلامي تاريخ تجربه دا هم ښيي چې کله مسلمانان يو شوي، هغوی ته بريا، عزت او پرمختګ نصيب شوی او هرکله چې اختلافاتو، تعصب او تجزيې ته لمن وهل شوې، کمزوري، شاتګ او زوال يې تجربه کړی.

که د اسلام لومړيو کلونو ته وګورو، نو څرګندېږي چې د مسلمانانو اتحاد او د واحد رهبر تابع کېدل، د مدينې اسلامي دولت د جوړېدو بنسټ وګرځېد. هلته رسول الله د مهاجرينو او انصارو ترمنځ ورورګلوي ټينګه کړه، د اسلامي ورورولۍ اصل يې وضع کړ او ټولنيز عدالت ته يې وده ورکړه. دا وحدت و، چې مسلمانان يې د بدر، احد او احزاب غزاوو کې بريالي کړل. د خلفای راشدينو د واکمنۍ پر مهال هم د اسلامي امت د اتحاد برکت دا و، چې د روم او فارس ستر امپراتورۍ فتح شوې او اسلام د نړۍ د لويو تمدنونو ترمنځ يې ځان ثابت کړ. د اسلامي تمدن پراختيا، د علم، اقتصاد او سياست وده، د اسلامي نړۍ عظمت ټول د يووالي پايله وه.

خو کله چې اختلافات زيات شول، قومي او سمتي تعصبات را پيدا شول او مسلمانانو د خپلمنځي نفاق ته لمن ووهله، نو د اسلامي خلافت کمزوری شو. د اندلس له لاسه ورکول، د بغداد سقوط، د عثماني خلافت ړنګېدل او د اسلامي نړۍ تجزيه د همدغو اختلافاتو او بېلوالي نتيجه وه. نن ورځ هم اسلامي نړۍ له ورته ستونزو سره مخ ده. د سياسي اختلافاتو، مذهبي تفرقو او قومي مسائلو له امله د اسلامي امت قوت له منځه تللی او د بهرنيو دښمنانو لپاره د مداخلې زمينه برابره شوې. که مسلمانان غواړي بېرته خپل قوت ومومي، بايد اختلافات شاته کړي، د قرآني لارښوونو پر بنسټ يو شي او د اسلامي ورورولۍ اصل ته وده ورکړي.

په نننۍ نړۍ کې سياسي، اقتصادي او ټولنيزو شرايطو دا اړتيا لا زياته کړې چې اسلامي ټولنه متحده شي، ځکه چې بهرني ځواکونه د مسلمانانو ترمنځ د اختلافاتو د ژورولو هڅه کوي. له استعماري دورې راپدېخوا، اسلامي نړۍ قصداً ټوټه ټوټه کړل شوه، مصنوعي سرحدونه رامنځته شول او د ملي هويت فکر ته وده ورکړل شوه، څو اسلامي هويت کمزوری شي. نن هم لويديځ طاقتونه او نړيوال سياسي لوبغاړي هڅه کوي چې د اقتصادي فشار، فکري جګړې او ټولنيزو اختلافاتو له لارې اسلامي نړۍ ووېشي. اسلامي هېوادونه نه يوازې د نظامي يرغل ښکار شوي، بلکې د اقتصادي بنديزونو، د پانګې محدوديتونو او نړيوالو مالي ادارو تر سختو شرايطو لاندې دي، چې د دوی اقتصادي خپلواکي او پراختيا يې اغېزمنه کړې. سربېره پر دې، د فکري جګړې او رسنيزو وسيلو له لارې د مسلمانانو عقيدوي باورونو، ارزښتونو او کلتور ته ضربه ورکول کېږي، څو دوی د خپلو اسلامي اصولو پر ځای د پرديو افکارو منلو ته چمتو شي. د وحدت نشتون دا ستونزې لا پسې زياتې کړې، ځکه چې هر هېواد يوازې د خپلو ګټو په فکر کې دی، نه د ټول اسلامي امت د خير. که مسلمانان غواړي چې خپل عزت، اقتصاد او سياست خوندي کړي، بايد اختلافات يوې خوا ته کړي، خپلمنځي اتحاد ته وده ورکړي او د ګډو ارزښتونو پر بنسټ د يووالي لاره خپله کړي.



د مسلمانانو ترمنځ اختلافات دوه لوی عوامل لري، داخلي او خارجي. د داخلي اختلافاتو له ټولو مهم عوامل مذهبي تعبيرونه، قومي او ژبني تعصبات، سياسي اختلافات او اقتصادي بېعدالتي ده. مذهبي اختلافات بايد د دښمنۍ پر ځای د اجتهادي تنوع په توګه ومنل شي. اسلام د اجتهاد د تنوع اصول لري، چې مختلف عالمان يې د وخت، ځای او شرايطو مطابق فقهي استنباطونه لري. که دا اجتهادي اختلاف د دښمنۍ او کرکې پر ځای د پوهې پراخوالي ته وسپارل شي، نو د اسلامي امت لپاره به د ودې لامل شي. د قوميتونو، ژبو او سيمه‌ييزو هويتونو پر بنسټ اختلافات هم د امت د وېشلو لپاره کارول شوي، چې اړتيا ده ټول مسلمانان د اسلام د ورورولۍ پر اصولو عمل وکړي. قومي او ژبني تعصبات د اسلامي امت د کمزورۍ ستر لاملونه دي، چې د اسلامي تاريخ په اوږدو کې يې د اختلافونو اور بل کړی. د سياسي قدرت ترلاسه کولو لپاره سيالي هم د اختلافاتو بل لامل دی، چې بايد د اسلامي حکومتونو ترمنځ د همکارۍ له لارې حل شي.

خارجي عوامل بيا د استعماري قوتونو دسيسې، فکري جګړه او د سياسي ګټو لپاره د مذهبي اختلافاتو کارول دي. لوېديځو قدرتونو د اسلامي نړۍ د وېشلو لپاره مصنوعي سرحدونه وټاکل، قومي اختلافات يې وپارول او د ځينو اسلامي دولتونو پر ضد يې نور اسلامي هېوادونه وکارول. استعماري قدرتونو هڅه وکړه چې د اسلامي امت د وحدت روحيه له منځه يوسي او مسلمانان د ملي، قومي او سيمه‌ييزو هويتونو پر بنسټ ووېشي. د مسلمانانو ترمنځ د اختلاف د ژورولو لپاره غربي رسنۍ، د اسلام ضد نظريې او بې‌بنسټه تبليغات پياوړي شوي، چې موخه يې د اسلامي امت فکري او کلتوري وېش دی. د فکري جګړې يوه بله بڼه دا ده چې د اسلامي امت د ارزښتونو بدنامول، د ديني زده کړو کمزوري کول او د مسلمانانو ترمنځ د شک او بې‌باورۍ فضا ايجاد شي، تر څو هغوی د خپلو مشکلاتو اصلي عوامل ونه پېژني او تل د داخلي شخړو ښکار وي.

د اسلامي امت د يووالي لپاره عملي اقدامات اړين دي. مسلمانان بايد پوه شي چې د دوی قوت په يووالي کې دی، ديني عالمان، ليکوالان او رسنۍ بايد د امت د وحدت ارزښت تشريح کړي. د اسلامي هېوادونو ترمنځ سياسي همغږي بايد رامنځته شي، اسلامي حکومتونه بايد د خپلمنځي شخړو پر ځای د اسلامي نړۍ د ګټو لپاره يوځای کار وکړي، د اسلامي همکاريو سازمان (OIC) او نورې اسلامي بنسټونه بايد پياوړي شي. د اسلامي امت د يووالي لپاره د اقتصادي همکاريو پراخوالی هم حياتي اهميت لري. اسلامي هېوادونه بايد د اقتصاد په برخه کې يو بل سره مرسته وکړي، د اسلامي بانکدارۍ سيستم ته وده ورکړي او د اسلامي هېوادونو ترمنځ تجارت ته پراختيا ورکړي. د اسلامي امارت تجربه د اسلامي يووالي لپاره يو مهم مثال دی، چې څنګه يو اسلامي نظام کولی شي د داخلي اختلافاتو پر ځای د اسلامي ارزښتونو پر بنسټ يو قوي نظام رامنځته کړي. اسلامي امارت وښووده چې د اسلامي نظام پلي کېدل، د شريعت حاکميت او د يوې منظمې ادارې جوړښت مسلمانانو ته امنيت، ثبات او عزت بېرته راوړي.

د دښمن د فکري جګړې پر ضد مبارزه اړينه ده. مسلمانان بايد د رسنيو، تعليمي نصاب او فکري بيدارۍ له لارې د لوېديځو طاقتونو د فکري يرغل پر ضد کار وکړي. د اسلامي فکر ژوندي ساتل، د ديني تعليماتو عامول او د اسلامي هويت ساتنه ضروري ده. اسلامي نړۍ بايد د لوېديځو رسنيو، سينما، او تفريحي صنعت لخوا د اسلامي ارزښتونو پر ضد پروپاګندونو ته متوجه وي. د اسلامي فکر، فقهې او سياسي شعور پراخوالی کولی شي چې د دښمن د نفوذ مخه ونيسي. که د وحدت لپاره د قرآن او سنتو پر لار حرکت وشي، اسلامي امت کولی شي خپل له لاسه ورکړی عزت بېرته ترلاسه کړي. د اختلافاتو د حل لپاره د زغم، ورورولۍ او متقابل احترام فضا بايد رامنځته شي، ترڅو مسلمانان د خپلمنځي اختلافاتو پر ځای د امت د بيدارۍ او پرمختګ لپاره يو موټی شي. د اسلامي تمدن بيا را ژوندي کول، د مسلمانانو ترمنځ همکاري او د لوېديځو دسيسو پر وړاندې يو موټی دريځ نيول هغه ګامونه دي چې اسلامي امت ته يې ضرورت لري، تر څو خپل ازاد حيثيت بېرته ترلاسه کړي.

## در ۴ ولایت برای عودت‌کنندگان شهرک ساخته...

عودت‌کنندگان در چهار ولایت بیان کرد. او همچنان بر دیدار هیئت‌های تخنیکی یوناما و وزارت امور مهاجرین تاکید کرده است. در مورد ولایت‌هایی که قرار است در آن شهرک برای مهاجرین ساخته شود، چیزی گفته نشده است.این درحالی است که روند اخراج‌اجباری مهاجرین افغان از کشورهای ایران و پاکستان همه‌روزه ادامه دارد.

## سره صلیب د بشري مرستو د پراختیا...

مرستو په پراختیا ژمنه شوې ده. په دې غونډه کې ښاغلي متقي په افغانستان کې د سره صلیب فعالیتونه د منني وړ بللي او غوښتنه یې کړې، چې یاده کمېټه دې په نورو هېوادونو کې د بندي افغانانو د برخلیک معلومولو په برخه کې هم مرسته وکړي. یاده دې شي، په ترسره شوي ناسته کې د یادې کمېټې عمومي رییس ژمنه کړې، چې په دې برخه کې به خپلو همکاریو ته دوام ورکوي. په افغانستان کې د یادې کمېټې فعالیتونه د لسیزو راهیسې دوام لري، چې پکې روغتیایي خدمتونه، د معلولینو لپاره د مصنوعي غړو برابرول، د بندي افغانانو ملاتړ، د جګړې د قربانیانو لاسنیوی او نور بشردوستانه فعالیتونه شامل دي.

## آغاز فعالیت کارخانه تولید سنگ...

دیروز از آغاز فعالیت این کارخانه خبر داده‌اند. آنان گفته‌اند که این کارخانه از سوی یک سرمایه‌گذار محلی ایجاد شده و در حال حاضر ۶ نوع سنگ مرمر، موزائیک و مواد ساختمانی تولید می‌کند. به گفته مسئولین محلی ولایت لوگر این کارخانه با ماشین و وسایل مدرن مجهز است. مسئولین کارخانه می‌گویند، ماهانه حدود ۳۰ تُن سنگ مرمر، ۴۰ هزار موزائیک و ۶ نوع مواد ساختمانی دیگر را تولید و به بازار عرضه می‌کنند. با فعال‌سازی این کارخانه برای ده‌ها تن نیز زمینه کار فراهم شده است. این در حالی است که تلاش برای ایجاد فرصت‌ها به سرمایه‌گذاران داخلی در کشور همچنان ادامه دارد.

## هېواد کې د لویو لارو، وسپنې پټلیو د پرمختګ...

**حق‌شناس:** د دې پوښتنې په ځواب کې باید ووایم چې د هېواد په یو شمېر ګرمو ولایتونو او ولسوالیو کې د ټولګټو چارو وزارت اړوند پروژې دا مهال عملاً تر کار لاندې دي. د کابل - جلال اباد دویم لین سړک، د کندهار - سپین بولدک دویم لین د رغنیزو چارو جریان د یادښت وړ دي؛ خو د هېواد په یو شمېر سړو ولایتونو کې لا هم د هوا درجه منفي لسو ته رسېږي؛ دې ډول هوا کې د ساختماني، کانکریټي او سفالتي کارونه د استحکام وړ نه وي، نو پر همدې دلیل یې کارونه لا ځنډېدلي دي.

**شریعت: حق شناس صاحب تاسو خو د هېواد سړو او تودو سیمو ته کوم مهالوېش نه لرئ؟ داسې خو نه کوئ چې په ژمي کې په تودو ولایتونو کې پروژې پر مخ وړئ او د هوا په ګرموالي په سړو سیمو کې؟**

**حق‌شناس:** نه! د ټولګټو چارو وزارت د دې مهالوېش له مخې کار نه کوي، بلکې تاسې ته غوره معلومه ده چې په سړو سیمو کې د ډېرې واورې اورښت، د تودوخې د درجې ټیټوالی او نور د ساختماني کارونو د ځنډ باعث کېږي؛ اما که چېرې هوا برابره وي نو د هېواد په ټولو ولایتونو کې به د ټولګټو چارو وزارت د پروژو چارې د کال په هر موسم کې ترسره کېږي.

**ـ د کابل ـ کندهار سړک چارې تر کوم ځایه رسېدلي او د اټکل له مخې چارې یې په څومره وخت کې خلاصېدونکي دي؟**

د ټولګټو چارو وزارت تېرکال د کابل - کندهار لویې لارې د اساسي بیارغونې چارې په ۱۳ برخو کې پیل کړې وې، چې په اوږدو کې یې د ۱۷۵۶ پایو پُلګوټو او ۴۸ پایې لویو پلونو د ترمیم او بیارغونې کار هم شامل وو او دا مهال یې د څه باندې ۴۳۰ کیلومتره سړک د لومړي او دویمې طبقې د سفالت اچونې کار بشپړ شوی او همدارنګه د ځینو برخو د درېیمې طبقې د سفالت کار یې هم بشپړ شوی او د درېیمې طبقې کار یې ممکن راتلونکي کال کې بشپړ شي.

**ـ ښاغلی حق‌شناس د کابل ـ جلال اباد د دویم لین سړک لا هم د سروې په حال کې دی، کار یې پیل دی او یا یې ورته بودیجه بېلېدونکې ده؟**

ـ د کابل - جلال اباد لویې لارې دویم لین سړک ټول اوږدوالی شاوخوا ۱۴۷ کیلومترو ته رسېږي. ددې سړک نږدې ۶۵ کیلومتره سړک(۳۳ کیلومتره د ننګرهار له لوري او ۳۲ کیلومتره نور یې د کابل ولایت له لوري) په کانکریټي ډول رغول شوی او پاتې نور یې په دریو بېلا بېلو برخو وېشل شوی چې د لومړۍ برخې د ۲۲ کیلومتره سړک د اساسي رغونې کار یې دا مهال د ټولپلاز محصول په بدل کې عملاً جریان لري او د پاتې دوو برخو په اړه یې له ساختماني شرکتونو سره خبرې اترې روانې دي چې له قرارداد وروسته به یې رغنیزې چارې پیل شي.

**ـ یو هېواد د وسپنې پټلیو له لرلو پرته نه شي صنعتي کېدی. د ټولګټو چارو وزارت او په ټوله کې دې برخې ته د اسلامي امارت څومره ژمنتیا او پام دی؟**

د افغانستان اسلامي امارت تر واکمنېدو وروسته د ټولګټو چارو وزارت زېربنایي پروژو ته ډېره پاملرنه کړې ، چې د وسپنې پټلۍ په برخه کې یې هم په تېرو درېیو کلونو کې د حیرتان-مزارشریف وسپنیزې کرښې ترمیماتي چارې تردې مهاله د(۸۰) سلنه فزیکي پرمختګ سره ترسره کړې دي.

د حیرتان-مزارشریف د وسپنیزې کرښې اړوند نایب آباد سټیشن (څلورم-پورټ) د (۵۰) کیلومتره په اوږدوالي په بشپړ ډول فعال او ګټې اخیستو ته سپارل شوی دی.

د خواف-هرات وسپنیزې کرښې د څلورمې قطعې د لومړۍ برخې رغنیزې چارې د (۸۰) سلنه فزیکي پرمختګ په لرلو سره په چټکۍ سره جریان لري.

د غه راز د خواف - هرات وسپنیزې کرښې د څلورمې قطعې دویم فاز د رغنیزې چارې هم قرارداد شوی، چې لومړنۍ چارې دا مهال روانې دي.

یاده وسپنیزه کرښه ټولټال (۴۳) کیلومتره اوږدوالی لري، چې د هرات ولایت په غوریان او زنده جان ولسوالیو کې تېرېږي.

**ـ اوسمهال زموږ د صادراتو او وارداتو څو سلنه مالونه د وسپنې پټلیو له لارې لېږدول کېږي؟**

د روان ۱۴۰۳ لمریز کال له وري میاشتې څخه تر مرغومي میاشتې پورې، چې ټولټال (۱۰) میاشتې کېږي؛ د وسپنې پټلۍ د څلورو مسیرونو (حیرتان، آقینې، تورغونډۍ او خواف-هرات له لارې شاوخوا (۳.۵) میلیون مټریک ټنه انتقالات ترسره شوي او د ټولګټو چارو وزارت هڅه کوي چې یاد انتقالات له دې هم په زیاته اندازه ترسره شي.

ـ د یوه صنعتي او پر ځان‌بسیا افغانستان په هیله! له وخت او ګټورو مالوماتو مو مننه کوو.

ـ ژوندی اوسئ الله (ج) مو تل بریالي لره، له تاسو څخه هم مننه کوو ،چې زموږ د فعالیتونو او لاسته راوړنو بشپړ معلومات تر هېوادوالو رسوئ.

**خالد افغان**

# افغان اعلانات

### اطلاعیه مفقودی

یک طغرا مهر دفتر رهنمای معاملات برادران سمسور به اسم محترم عصمت الله فرزند محمد کبیر ولدیت محمد هاشم صادره سال ۱۴۰۱/۱۰/۱۹ مفقود گردیده و فاقد اعتبار می باشد.۹۳۲۲

***

### اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه

محترم حیات الله محزون فرزند غلام امیر محمد محزون ولدیت ملا فقیر محمد محزون دارنده تذکره نمبر (۱۷۷۲۰-۱۰۰۲-۱۳۹۹) مسکونه اصلی ولایت کابل مالک امتیاز دواخانه استاد امیر محمد محزون واقع ولسوالی کلکان ولایت کابل طی درخواستی به مقام محترم معینیت غذا و ادویه وزارت صحت عامه عارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه خویش بالای محترم توفیق اسدی فرزند سخی گل ولدیت خواص دارنده تذکره شماره (۸۹۷۰۶-۱۱۰۳-۱۴۰۰) مسکونه اصلی ولایت کابل گردیده است .

اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۰ روز به آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانستان واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند.۹۳۲۰

***

### اطلاعیه تغییر مالکیت شرکت

تشبث شرکت تجارتی ( مد ویژون ) دارنده جواز نمبر ( ۲۲۳۹۸ ) طی یک قطعه عریضه و تصویب عنوانی این ریاست خواهان تغییرات ذیل شده اند که محترم محمد اسحق نیکزاد فرزند محمد ابراهیم رئیس تشبث از ریاست استعفا و (۵۰٪ ) سهم خویش را به محترم نصیراحمد فرزند مولوی ملنگ معاون بر حال شرکت واگذار نموده که نامبرده بحیث رئیس جدید تعیین میگردد و همچنان محترم نصیر احمد فرزند مولوی ملنگ رییس جدید ۵۰٪ سهم خویش را به محترم عبدالطیف نیکزاد فرزند مولوی ملنگ نیکزاد دارنده تذکره نمبر ( ۳۱۲۵۸- ۱۰۰۰- ۱۳۹۸) واگذار نموده که نامبرده به حیث معاون جدید تعین میگردد که در نتیجه سهم ریس ۵۰٪ و سهم معاون ۵۰٪ میشود.

بناء اشخاص ، موسسات و دوایر دولتی در مورد آگاهی حاصل نموده از تاریخ نشر اعلان الی مدت ده یوم به ریاست عمومی معینیت غذا و ادویه افغانستان واقع محمد جان خان وات متصل وزارت مخابرات اطلاع دهند.۹۳۲۳

***

### اطلاعیه تصمیم اعطا ی قرار داد »

بدینوسیله به تاسی از ماده چهل وسوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده میشود که وزارت زراعت، آبیاری ومالداری در نظر دارد تا پروژه تدارک ۱۲ پایه کمپیوتر Laptop و ۱۲ پایه Printer مورد ضرورت ریاست حفاظه نباتات و قرنطین تحت داوطلبی ملی داخلی با کود نمبر MAIL/PD/NCB/G-98/ 1403/R را به شرکت محترم خدمات لوژستیکی افغان همکار دارای جواز نمبر (٤٠٦١٩) به قیمت مجموعی مبلغ ۸۰٤,٦٠٠ (هشت صد و چهار هزار و شش صد افغانی ) اعطا نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، میتوانند اعتراض خویش را از تاریخ نشراین اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توام با دلایل آن به ریاست تهیه وتدارکات وزارت زراعت، آبیاری و مالداری واقع کارته سخی، جمال مینه، وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارایه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرار داد نبوده والی تکمیل میعاد فوق الذکر وطی مراحل قانونی بعدی، قرار داد منعقد نخواهد شد.

***

### موضوع: اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تأسی از فقره (۲) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم داوطلبان رسانیده می شود، د افغانستان برشنا شرکت در نظر دارد تا قرارداد پروژه ترمیم ساختمان سیفون کانال آب دستگاه تولیدی برق نمبر دوم غوری تحت شماره برشنا شرکت /١٤٤٦/ داوطلبی باز ملی/ ساختمان /۰۱٤ با شرکت ساختمانی وسرک سازی آسمایی شیرزاد دارنده جواز نمبر ۸۸۵۸۰ داشتن محل اصلی دهبوری سرک دانشگاه خانه نمبر ۱۷مرکز کابل به قیمت مجموعی مبلغ ٥،٤٠٠،٠٠٠ پنج میلیون چهارصد هزارافغانی اعطا نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاست تدارکات دافغانستان برشنا شرکت – دهمزنگ – کابل افغانستان وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

***

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تأسی از فقره (۲) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، د افغانستان برشنا شرکت در نظر دارد تا قرارداد) تهیه و خریداری ۱۵ قلم تجهیزات دستگاه حرارتی تره خیل (تحت شماره داوطلبی ) برشنا/١٤٠٣/باز ملی/اجناس-۰۹۰) را به شرکت خدمات لوژستیکی غنی قیوم دارنده جواز نمبر D-01-954 با داشتن محل اصلی {جاده تربت جان، مرکز فاریاب، میمنه، فاریاب} به قیمت مجموعی مبلغ ۲٥,۷۲٦,۳۲۰ افغانی (بیست و پنج میلیون و هفتصد و بیست و شش هزار و سه صد و بیست افغانی) اعطا نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاست تدارکات د افغانستان برشنا شرکت – دهمزنگ – کابل افغانستان وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

### اعلان داوطلبی مؤسسه داکار

DACAAR

مؤسسه خیریه داکار اعلان داوطلبی برای پروژه **(اعمار سیستم ابرسانی در قریه شوشک ولسوالی شیبکو ولایت فراه)** در پروژه WERP بانک جهانی پروگرام داکار را در پروسه ذیل به داوطلبی میگذارد. لهذا از تمام علاقمندان واجد شرایط تقاضا بعمل میاید که اسناد داوطلبی پروژه، مشخصات تخنیکی، پلان مدیریتی محیطی و اجتماعی و نقشه های مربوطه را از دفتر مرکزی داکار طبق آدرس ذیل ذریعه فلش دیسک یا هارد دیسک بدست بیاودند.

RFB No.: WB/WERP/DACAAR/FRH/SHEBKOH/SHUSHK/W-2

بناً ازمتقاضیان محترم خواهشمندیم تا آفرهای خویش را الی تاریخ ۹ مارچ ۲۰۲۵ مطابق 19 حوت ۱۴۰۳ ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر به شعبه لوجستیک دفتر مرکزی مؤسسه داکار واقع پروژه تایمنی، پایکوب نصوار، سرک 12 قلعه فتح الله، ولایت کابل بسپارند.

نوت: آفرهای نا وقت رسیده و انترنتی قابل پذیرش نمی باشد.

نمبر تیلفون: ۰۰۹۳۲۰۲۲۰۱۷۵۰

## بازدید هیئت بزرگان مشرقی...

از این آبدات تاریخی، فرصتی ارزشمند برای آشنایی بیشتر با تاریخ و فرهنگ غنی هرات است و نقش مهم در تقویت همبستگی میان اقوام مختلف کشور ایفا می‌کند. این بزرگان مشرقی همچنین بر اهمیت تحکیم روابط فرهنگی و اجتماعی میان اقوام تأکید کرده و از تلاش‌های دولت در راستای حفظ و ترویج میراث فرهنگی کشور قدردانی نمودند.

## خوست کې یو کانال ګټې...

د خوست ولایت مقام څخه په خپره شوې خبرپاڼه کې راغلي چې د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست تر چتر لاندې دغه کانال د مرکز اړوند په میاخېلو کلي کې ګټې اخیستنو ته سپارل شوی دی. خبرپاڼه زیاتوي چې یاد کانال د«یو اېن ډي پي» موسسې په مالي ملاتړ جوړ شوی دی. جوړ شوی کانال ۴۴۰ متره اوږدوالی او ۳۱ هکتاره کرنیزه ځمکه خړوبولی شي.

## د ډنمارک د کډوالو ټولنې د کاري...

د اداري لګښتونو د کمښت او کډوالو ته د مرستو په وړاندې کولو کې د لا پاملرنې ژمنه هم کړې ده. د ډنمارک د کډوالو ټولنه له اوږدې مودې راهیسې په افغانستان کې فعاله ده او د بې‌وزله او بې‌ځایه شویو خلکو لپاره د ژوند اسانتیاوو، سرپناه، د کاري زمینو، او بشري مرستو د برابرولو په برخو کې کار کوي.

## خوست کې د جبري نکاح...

د محتسبینو له یاد ګام ستاینه او مننه وکړه او په راتلونکي کې یې له دغه ډول کړنې نه ترسره کیدو ژمنه وکړه. د یادونې ده، چې د خوست امنیه قوماندانۍ منسوبینو له لوري پخوا هم د ورته پېښو مخنیوی ترسره شوی دی.

## هرات کې یوه مېرمن له ۹ کلن...

د امر بالمعروف، نهي عن المنکر او د شکایتونو اورېدلو وزارت زیاته کړې، چې د دې مېرمنې خاوند شرعي محکمې ته ورپېژندل شوی دی. یاده دې شي، چې له دې وړاندې هم د یاد وزارت د محتسبینو په هڅو بېلابېلو ولایتونو کې ګڼ شمېر ښځې له کورنیو زندانونو څخه ازادې شوې دي.

## غور کې واورو د ۳ تنو ژوند...

د غور ولایتي مسئولینو ویلي، دغه درې تنه د غور پساپند ولسوالۍ اوسېدونکي دي، هلمند ولایت ته په لار وو چې واورې ښویدو پېښه کې یې ژوند له لاسه ورکړی. ښاغلي حماس زیاته کړې، د امنیتي ځواکونو او سیمې اوسېدونکو د پرلپسې هڅو وروسته د دغو کسانو جسدونه له واورې ایستل شوي او کورنیو ته یې سپارل شوي دي.

## اسلامي امارت له سیمې ورهاخوا...

له بله پلوه، جاپاني رسنیو ویلي چې افغان پلاوي دې سفر کې خپل اندونه او لیدلوري له جاپاني مسئولینو سره شریک کړي دي. یاده دې شي چې جاپان په تېرو درجاپاني رسنیو ویلي، د افغانستان حکومت استازي به دې سفر کې خپل لیدلوری له جاپاني چارواکو سره شریک کړي

## کندز کې یو سربند ګټې...

څه باندې زرجریبه ځمکه خړوبیږي. نوموړي زیاته کړه، چې د یادې پروژې په پلي کېدو سره ۲ زره کسانو ته په مستقیم او غیرمستقیم ډول د کارزمینه برابره شوې ده. د یادونې وړده، چې دغه اقدام نه یوازې د سیمې د کرنیزو محصولاتو له ښه والي سره مرسته کوي، بلکې د کروندګرو د اوبو د کمښت ستونزې به حل شي.

## زابل کې ۱۶ مخابراتي سایټونه...

رییس مولوي عبدالهادي یحی باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د دغه ولایت مرکز قلات او شمېر نورو سیمو کې ۱۶ نوي سایټونه فعال شوي، چې د دغه ولایت زرګونه اوسېدونکي ترې ګټه اخلي. نوموړي زیاته کړې، چې په دغه ولایت کې ۷۹ بېلابېل مخابراتي سایټونه شتون لري، او د ۳۱ نورو مخابراتي سایټونو د جوړېدو کارونه دوام لري. ورته مهال د یاد ولایت اوسېدونکو د مخابراتي شبکو د خدمات څخه خوښي ښودلې او وایي، چې په دغه ولایت کې به د انټرنټي خدماتو کیفیت ښه شي او ورسره به د خلکو ستونزې حل شي.

## آغاز برنامه ارتقای ظرفیت...

توسط ماستر ترینران ورزیده آموزش می بینند. هدف از برگزاری آن بهتر شدن امور تدریسی در مراکز تعلیمات تخنیکی و مسلکی و بلند بردن سطح دانش و آگاهی استادان عنوان شده است. به اساس پلان ریاست ارتقای ظرفیت استادان اداره تعلیمات تخنیکی و مسلکی، قرار است بزودی این برنامه در سایر ولایات کشور نیز آغاز گردد.

## د افغانستان بانک نن ۲۰ میلیونه...

او یا هم په حوالې سره په ټاکلې موده کې په بانک کې تحویلې کړي. د افغانستان بانک د افغانیو پر وړاندې د ډالرو د ارزښت د کمښت په خاطر، د روانې میاشتې په ۱۷مه هم ۲۵ میلیونه ډالره وپلورل.

## د بلخ نوی کانال د ملي وحدت...

مستحق وګړي څوک دي؟ یوازې هغه خلک چې تېرو څلورو لسیزو کې یې د دوارو بهرنیو یرغلونو پر وړاندې مقابله او مبارزه کړې. هغوی چې وطن سره یې وفا کړې، شهیدان شوي، یتیمان شوي، زندانونه یې ګاللي، کلي او کورونه یې وران شوي او د دښمن له لاسه یې پردیو هېوادو کې د مسافرۍ او پردېسۍ شپې تېرې کړې. یوازې همدا طبقه خلک مستحق او صرف همدوی دي چې که یاده سیمه کې یې پښې ټینګې شي نو بیا له شکه چې هېواد به د تل لپاره له تجزیې او ګډوډۍ ژغورل شوی او پر ایکي یو مرکزي حکومت را غونډ شوي وي.

Shariat Daily

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلور لارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
شماره توزیع و شکایات: ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶ /۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Tuesday 18 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 686

# بازدید هیئت بزرگان مشرقی از بند پاشدان و آبدات تاریخی هرات



برای نخستین بار، هیئتی متشکل از بزرگان قومی ولایات شرقی کشور به هرات سفر کرده و از بند پاشدان و آثار تاریخی این ولایت دیدن کردند.

این هیئت ۲۳ نفره در جریان سفر خود می گویند که تأمین امنیت سراسری در کشور، عامل اصلی سفرشان به هرات بوده است. آنان تأکید می کنند که امنیت کنونی زمینه را برای سفرهای آزادانه فراهم کرده و به آنها امکان داده تا بدون دغدغه از ولایات مختلف کشور بازدید کنند.

بزرگان قومی حاضر در این سفر بر این باورند که بازدید... ص۳

## خوست کې یو کانال ګټې اخیستو ته وسپارل شو



د خوست ولایتي مسئولین وایي چې په دغه ولایت کې د ۵۰ زره ډالرو په لګښت د ځمکې خړوبولو یو کانال جوړ او ګټې اخیستنو ته وسپارل شو. ۳مخ

## د ډنمارک د کډوالو ټولنې د کاري پروژو د پلي کېدو ډاډ ورکړ




د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت مسلکي مرستیال مولوي عبدالرحمن راشد په کابل کې د ډنمارک د کډوالو ټولنې له رییسې دانیه الشریف سره کتلي دي.

یاد وزارت وایي، چې په دې کتنه کې دواړو لوریو په افغانستان کې د دې ټولنې د کاري پروژو په تړاو خبرې کړې دي.

د کډوالو چارو مسلکي مرستیال په دې غونډه کې د دغه بنسټ د اداري لګښتونود کمښت او کډوالو په برخه کې د لا ډېرو پروژو همکاریو غوښتنه کړې ده.

د ډنمارک د کډوالو ټولنې رییسې له حکومتي ادارو سره په همغږۍ کې د پروژو د پلي‌کېدو ډاډ ورکړی او زیاته کړې یې ده، چې د دوی موخه کډوالو ته چوپړتیاوې برابرول دي.

یاده دې شي، چې نوموړې په راتلونکي کې د بنسټ ... ۳مخ

## هرات کې یوه مېرمن له ۹ کلن کورني بنده ازاده شوه



د امر بالمعروف، نهي عن المنکر او د شکایتونو اوریدلو وزارت وایي، چې په هرات کې یوه مېرمن له کورني بنده ازاده شوې ده.

د یاد وزارت د خبرپاڼې له مخې، دغه مېرمن د هرات ولایت د محستبینو په هڅو چې د ۹ کلن بند ترڅنګ د خپل خاوند له لوري شکنجه شوې هم وه، ژغورل شوې ده. ۳مخ

## خوست کې د جبري نکاح مخنیوی وشو

د خوست ولایت په ځاځي میدان ولسوالۍ کې د امر بالمعروف او نهي عن المنکر آمریت محتسبینو له لوري د اجباري نکاح مخه ونیول شوه.

د خوست ولایت د ځاځي میدان ولسوالۍ د امر بالمعروف او نهي عن المنکر آمریت له لوري د یادې ولسوالۍ اړوند یوه میرمن، چې د خاوند له وفات وروسته د اوږدې مودې راهیسې د کورني تاوتریخوالي له امله بې سرنوشته پاتې شوې وه، او د کورنۍ د ناسم چلن له امله د شرعي حقونو څخه بې برخې وه، د یاد آمریت محتسبینو د خبروي سره سم اجراات کړي او د یادې میرمنې اړوند دواړه کورنۍ یې د شرعي احکامو او توشیح شوي قانون په رڼا کې د هغې حقونو ته رابللي دي.

دواړو خواو په بشپړ رضایت سره د هغې حقونو ته غاړه ایښې، دوی په ورته وخت کې... ۳مخ

## غور کې واورو د ۳ تنو ژوند واخیست



د غور ځایي مسئولین خبر ورکوي، چې د پسابند ولسوالۍ بند انقرچاق کلي کې د واورې ښویېدو له امله درې تنو ژوند بایللی دی. ۳مخ

## توزیع مواد خوراکی برای ۱۴۵۹ خانواده در غزنی

در ادامه توزیع کمک‌های خوراکی بشردوستانه برای خانواده‌های نیازمند در کشور به یک‌هزار و ۴۵۹ خانواده در مربوطات ولایت غزنی، مواد خوراکی کمک شد.

به گفته ریاست احیاء و انکشاف دهات ولایت غزنی، این تعداد از خانواده‌ها کمک‌های یادشده را در مربوطات ولسوالی «آب‌بند» این ولایت دریافت کرده‌اند.

کمک‌های یادشده از سوی برنامه جهانی غذا (WFP) فراهم و توسط موسسه هیلتو، در اختیار خانواده‌های نیازمند قرار داده شده است.

این کمک‌ها برای هرخانواده مقدار ۵۰ کیلوگرام آرد، ۵ لیتر روغن، ۶ کیلوگرام دال‌نخود، یک کیلوگرام نمک، ۳۰ پاک غذای مقوی برای کودکان و دو پاکست سوپر سریال توزیع شده است.






## زیلنسکي او مارکو بیو ریاض ته تللي



د امریکا د بهرنیو چارو وزیر مارکو روبیو منځني ختیځ ته د خپل سفر په ترځ کې له اسراییلو وروسته سعودي عربستان ته رسېدلی دی.

د رویټرز د راپور له مخې، تاکل شوې چې نوموړی به په دې سفر کې د اوکراین او روسیې ترمنځ د روانې درې کلنې جګړې پای ته رسولو په تړاو له کېدونکو خبرو وراندې د دغه هېواد له چارواکو سره وګوري.

د یو بل خبر له مخې، د اوکراین ولسمشر ولودیمیر زلینسکي هم سعودي عربستان ته رسېدلی او د دې هېواد له چارواکو سره یې لیدلي دي.

دا په داسې حال کې ده، چې د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ له دې وړاندې د روسیې له ولسمشر ولادیمیر پوتین سره د ټلیفون له لارې خبرې کړې او د جګړې د پای ته رسېدو په پار یې د مذاکراتو د پیل غوښتنه کړې.

## آمادگی بریتانیا برای اعزام نیروی نظامی به اوکراین

بربنیاد گزارش‌ها، کی‌یر استارمر، نخست‌وزیر بریتانیا ابراز آمادگی کرده که حاضر است جهت حفظ صلح و ثبات در اوکراین به این کشور نیروی نظامی بفرستد.

به گفته این روزنامه، نخست‌وزیر بریتانیا در مقاله‌ای گفته که اعزام نیروی نظامی این کشور به اوکراین به هدف تأمین صلح و جلوگیری از حملات روسیه در آینده عملی می‌شود.

او تأکید کرده که برای حفظ امنیت اروپا و اوکراین حاضر است هرکاری که لازم باشد انجام دهد.

به گفته نخست‌وزیر بریتانیا پایان جنگ روسیه و اوکراین نباید برای یک وقفه باشد.

این سخنان در حالی بیان شده که امریکا و روسیه توافق کرده‌اند که برای پایان جنگ در اوکراین پای میز مذاکره بنشینند.



## فنلنډ اوکراین ته د وسلو پر لېږد ټینګار کړی

د فنلنډ ولسمشر الکساندر سټاب اوکراین ته د وسلو د لېږلو او پر روسیې د اعظمي فشار راوستو غوښتنه کړې ده.

نوموړي دغه څرګندونې د اوکراین د جګړې د پای ته رسولو لپاره د امریکا او روسیې ترمنځ د احتمالي خبرو اترو په درشل کې کړې دي.

ویل کېږي، چې د اوکراین له جګړې څخه د چټک وتلو لپاره د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ هڅو په اروپا کې اندېښنې او بې باوري رامنځته کړې دي.

## امریکا کې سېلابونو مرګ ژوبله اړولې

د امریکا یو شمېر ایالتونو کې ویجاړونکي سېلابونو ۱۰ کسان مړه کړي او دارنه مالي زیامونه یې اړولي دي.

کنتاکي، ویرجینیا او تنسي ایالتونو کې سختو سېلابونو ویجاړۍ را منځ ته کړې او ژغورونکي هڅه کوي چې په سېلابونو کې بند پاتې خلک له مرینې وژغوري.

د اېن بي سي نیوز په کنتاکي ایالت کې د سرچینو په حواله ویلي، چې ممکن په دغه ایالت کې د وژنې ګراف لوړ شي.

امریکایي چارواکو خبرداری ورکړی چې ممکن مرګ ژوبله زیاته شي او له خلکو یې غوښتي چې امن سیمو ته ځانونه وباسي.